عقل ، بي نزاکت .

**بې ډوله** (beḍáw la) ص. نب . بی سلیقه ، بی نمود ، بی ارایش ، بی نظم . خواباندن.

**بېډۍ** (beḍáy) بنځ . م . ج . بجل .

**بېرته** (bírtə) ق. ۱) پس ، واپس ، باز ، بعد ۲) دور ، بعید ، کشاده ، فراخ.

**بيرول** (berawə́l) مص. مت . ترسانیدن .

**بيريدل** (beredə́l) مص.ل . ترسیدن .

**بېړا** (beṛā́) ص.نر.م (ج.بېړاګان ) کم عقل ، بی خرد .

**بيړه** (bíṛa) بنځ.م.عجله ، شتاب

**بيړۍ** (beṛáy) بنځ .م. ۱) زورق ، کشتی کوچک ۲) زولانهٔ آهنین .

**بيزو** (bīzó) بنځ.م (ج بیزوګاني) شادی ، میمون ، بوزینه .

**بې ږغه** (bežə̆ǧə) ص.نب.بی صدا ، بی اواز.

**بې کوره** (bekóra) ص.نب.بي خانه ، اواره ، مجرد .

**بيګاه** (begā́) ق . دیشب ، شب ګذشته.

**بيل** (bel) ص.جدا.تنها.علٰحیده.

**بيلتون** (beltū́n) نر.م. ج. جدائي فراق ، تنهائی ، زمانه هجر.

**بيلګه** (bélga) بنځ .م (ج.بیلګې ) نشانه ، علامه ، سراغ.

**بېلېدل** (beledə́l) مص.ل. جـــدا شد ن.

**بېنډۍ** (benḍáy) بنځ.م. بامیه که ترکاری معروف است.

**بې وزلی** (bewázlay) ص.نر.م. بیچاره ، خوار ، عاجز .

**بېول** (bewə́l) مص.مت. بردن شخص و یا حیوان به قوت خود آن بدون اینکه بر برنده حمل شود .

**بيول** ( bayawə́l) مص.مت. جاري ساختن.

**بيه** (báya) بنځ.م. مفغن بیع ، قیمت.

**بيه کول** (bayakawə́l) مص مت. قیمت چیزی را پرسان کردن.

**بيه کيدل** (bayakedəl) مص. ل. قمیت چیزی پرسان شدن.

# پ

ب (pe) ښځ.م.(ج. بې ګاني)حرف چهارم الفبای زبان پښتو.

**پاته** (pāta)ص نب. باقي ماند ه، پس مانده.

**پاته کول** (pātakawə́l)مص.مت. معطل کردن، ایستاد کردن.

**پاته کېدل** (pātakedə́l) مص.ل. معطل شدن.

**پاتې شوني** (pāteš ūnay)ص.نر.م. پس خورده، پس مانده و باقي مانده چیزی.

**پاڅول** (pāc awə́l)مص.مت. بیدار کردن، خیستاندن، بر انگیختن.

**پا څېدل** (pācedə́l) مص.ل. بیدار شدن، بر خاستن.

**پاخه** (pāxə́) ص.نر.م. ج. اشیای پخته شده.

**پارول** (pārawə́l) مص. مت. تحریک دادن، تیز کردن، بر انگیختن.

**پارېدل** (pāredə́l) مص.ل. به تحریک،به حرکت آ مدن، تیز شدن، بخشم آ مدن.

**پاړسوب**(pāṛsób) نر.م. ورم، اماسی.

**پاړکی** (pāṛkə́y) ښځ.م. ۱) قطعه شعــر، پارچه شعــر، ۲) طالع وفال.

**پاړو**(pāṛū) نر.م. دم، افسون.

**پاړوګر** (pāṛūgár) ص.نر.م. افسونگر، مارگیر.

**پازه** (pā́za) ښځ.م. کار، عمل، تاثیر.

**پاس** (pās) نر.م. ۱) بالا، بلند، فوق، ۲) رعایت و خاطر داری.

**پاسوال** (pāswā́l) نر.م. ۱) پادشاه، واکمن، ۲) د پولیسو برید جنرا ل .

**پاشل** (pāšә́l) مص.مت. افشاندن، پاشیدن، متفرق ساختن .

**پاغونده** (pāğundá) ښځ.م. (ج . پاغـــونډې). ۱) کلوله پنده، مخلوچ شدهٔ نداف. ۲) کلوله برف.

**پالل** (pālә́l)مص.مت. ۱) ادا کردن مناسبات دوستی و هر گونه مـــــساعی لا زمه۲) پرورش و تربیت کردن.

**پالنه** (pālә́na) ښځ.م. پرورش، تربیت، غم خواری.

**پالوا ل** (pālwā́l) ص. نر.م. پرهیز گار، و فادار.

**پالونکی** (pālū́nkay) ص.نر.م. پرورش و تربیت کننده، شخصیکه مناسبات دوستی را به جا می آورد.

**پام** (pām) نر.م. هوش. فکر.

**پاملرنه** (pāmlarә́na ) ښځ.م. توجه ، نگهداری. مراقبت.

**پانګوال** (pāngwā́l) نر.م. ثـروتمند و دارای سرمایه .

**پانګه** (pā́nga) ښځ.م. (ج. پانګې)سرمایه، راس المال ، ذخیره.

**پاڼ** (pāṇ) نر.م. (ج . پاڼونه) ۱) کمرکوه۲) جای که در کنار دریا زیر انرا دریا برده و مشرف به سقوط باشد.

**پاڼه** (pā́ṇa)ښځ.م(ج . پا ڼې ) ۱) ورق ۲)برگ ) رقعه ۴) پلوان، زمین .

**پایڅه** (pāycá) (ج پایڅې). پاچه تنبان.

**پایښت**(pāyә́ṣht)نر.م. بقـــــا، پایندگی.

**پاییدل** (pāyedә́l) مص.ل. ۱) پائیدن، زنده ماندن ۲) دیر ماندن ۳) سکونت کردن ۴) پایدار شدن.

**پپړ غوږ** (papaṛğwáz) نر.م. ۱) نوعی از علف کوهی؛ ۲) ص شخصیکه گوش های کلان داشته باشد.

**پت** (pat) نر.م. ۱) عزت، ناموس، ابرو ؛ ۲) پشم نرم بز که در زیر موهای دراز ان میباشد و ازان پتو می سازند. ۳) مناسبات دوستی و نگهداری ان.

**پتاسه** (patāsá) ښځ.م.(ج.پتاسې) شیرینی، نوعی از شیرینی.

**پترکی** (patárkay) نر.م. ۱) ارچق زخم، ۲) پترهٔ اهنی و ریزهٔ چوب.

**پتری** (patráy) نر.م. ( ج. پتري ) پترهٔ آهنی ۲) نوعی از ماهی، ۳) یک پارچه اهن نازک. ٤) میخ سپـــــر ٥) برگهای خشک نیشکر. ٦) به معنای قطع.

**پتړ** (patáṛ) نر.م. ( ج. پتړونه) گذرگاه دریا، راه عبور دریا.

**پتک** (paták) نر.م. (ج پتکونه) ۱) ابخوری سفری که به گردن اویزان میکنند؛ ۲) کاغذی که بر ان تار می پیچند.

**پتکی** (patakáy) نر.م. وگ. پتک .

**پتنګ** (patáng) نــــــــر.م. ( ج. پتنګان) ۱) پروانهٔ شمع، ۲) کاغذ پران بزرگ.

**پتون** (patū́n) نر.م. ( ج. پتونونه) ران.

**پته** (páta) ښځ.م. ( ج. پتې) ۱) نشانی، ادرس. ۲) شعبهٔ قوم. ۳) ته لای سیلاب . ۴) پر قطعه بازی.

**پتي** (patí) ص. ښځ.م. ج. ۱) دا ل وماش پخته ۲) اعتباری، با عزت،ابرومند.

**پتیالی** (patyāláy) نــــــر.م. (ج. پتیالي) معزز، ابرومند، با ناموس.

**پتېیل** (pateyə́l) مص. مت. تصمیم گرفتن.

**پټ** (paṭ) نر.م. ( ج. پټونه) ۱) پته زینه؛۲) پله؛۳) پوست درخت؛۴)پهلوهای سینه اشتر؛۵) رنگ دباغی چرم که از پوست و ریشه نباتات می ســــــازند. ٦) سر سام ۷) طوق قمری و غیره.

**پټ** (pəṭ) ص. نر.م. ج. پنهان، پوشیده.

**پټاټې** (paṭāṭé) ښځ.ج. کچالو.

**پټول** (paṭawə́l) مص.مت. ۱) پنهان کردن، پوشیدن، ۲) دزدیدن .

**پټی** (paṭáy) نر.م. ( ج. پټي) زمین کشتی، زمین زراعتی ، کرد زمین.

**پټی** (paṭə́y) ښځ.م. ۱) سر بند ویتی مخصوص طفل ۲) زخم بند یا جبیره؛ ۳) تخته ۴) تسمه کمر بند؛ ۵) پارچه دراز جامه.

**پټېدل** (pəṭedə́l) مص. ل. پنهان شدن.

**پچه** (páča) ښځ.م. ( ج. پچې) ۱) پشکل ۲) قرعه ۳) بوسه.

**پڅ** (pəc) ص.نر.م. ج/مونثه(ج.پڅې) کند.

**پڅول**(pəcawə́l)مص.مت. کند ساختن.

**پڅېدل** (pəcedə́l)مص. ل. کند شدن.

**پخپله** (paxpə́la) ق. خود بخود، شخصاً ، برضای خود .

**پخلا** (pəxlā́)ص.نب. دلاسا، خوشنود، آشتی شده.

**پخلنځی** (paxlanǯáy) نر.م. مطبخ، اشپزخانه ، جای پخت و پز.

**پخلی**(paxláy) نر.م. (ج پخلي) پخت و پز، طباخی.

**پخوا** (paxwā́)ق. پیش، قبل، سابق .

**پخول** (paxwə́l) مص.مت. پختن.

**پخه** (paxá)ص. ښځ.م. پخته.

**پخېدل** (paxedə́l) مص.ل. پخته شدن.

**پخېدل** (puxedə́l) مص.ل. قهقهه کردن.

**پدل** (padə́l) . نر.م. اثر، تاثیر.

**پراخ** (prāx) ص.نر.م. ج. گشاد ،وسیع .

**پراختیا**(prāxtyā́) ښځ.م. ۱) کشادگی، وسعت. ۲) وفرت.

**پراخول** (prāxawə́l) مص.مت ۱) گشادگی، وسعت دادن، ۲) وافر ساختن .

**پراخېدل** (prāxedə́l) مص.ل. ۱)گشاده شدن، وسیع شدن، ۲) وافر شدن.

**پرانیستی** (prānístay) نر.م. کشاده، افتتاح شده.

**پرانیستل** (prānistə́l) مص.مت. باز کردن، گشادن، افتتحاح کردن.

**پرتل** (partál) نر.م. (ج. پرتلونه)
سامانیکه پیش از کوچ، کوچیها به جای دیگر نقل میکنند، پیشخانه.

**پرتله** (partála) ښځ.م. موازنه، اندازه، سنجیده.

**پرتوګ** (partū́g) نــــــر.م. (ج پرتوګونه) تنبان، شلوار.

**پرتوګاښ** (partūgā́ṣ) نر.م.(ج. پرتوګاښونه) ازار بند.

**پرچ** (prač)نر.م. (ج. پرچې)
۱) عطسه ۲) صدای بز کوهی در وقت رمیدن.۳) نالبکی، پیشقاب،

**پرچال** (parc ā́l) نر.م. ۱)فصیل قطعه،۲) قطار چوب سردیوال .

**پرچول** (prač awə́l) مص.مت. به عطسه آوردن.

**پرچېدل** (pračedəl) مص.ل. عطسه کردن .

**پرځول** (parzawə́l)مص.مت. خوابانیدن، بر زمین افکندن

**پرځېدل** (parzedə́l) مص.ل. بر زمین افتیدن.

**پرخه** (párxa) ښځ.م. (ج. پرخې) شبنم، برنجک.

**پردی** (pradáy) نر.م.( ج. پردي) بیگانه. ۲) کواسهء کواسه..

**پرښه** (párṣa) ښځ.م. (ج. پرښې) خرسنگ لشم .

**پر کاله** (parkā́lə)ص.نب. سستی، تنبلی، کاهلی .

**پرکټی** (parkaṭáy) نــــــر.م. (ج پرکټي) بچه اندر.

**پرګنه** (parganá) ښځ.م. (ج. پرګنې) ۱) فریق. خاندان، فامـــــــیل، ۲) علاقه، ناحیه.

**پرګی** (pargáy) نر.م. ( ج. پرګي) دانه بلوط.

**پرله پسی**(parlapasé) ق. پیهم متواتر، تسلسل .

**پرمختګ** (parmaxtág) نر.م. پیشرفت، ترقی.

**پرنجل** (pranjə́l) مص.ل. عطسه کردن.

**پرنجېدل** (pranjedə́l) مص.ل.

عطسه کردن.

**پروت** (prot) ص.نــــــــــر.م. ( ج. پراته )افتاده، دراز کشیده.

**پروسږکال** (parosazkāl) ص.نر.م. ج. پارسال، سال گذشته.

**پرون** (parūn) ق. دیروز.

**پرېټ** (parét) نر.م. ( ج. پرېټونه) نمایش عسکری، مانورهٔ عسکری؛ ۲) نوعی ارایش و اصلاح موی سر؛ ۳) چین کرته و غیره.

**پرېړ** (prir)ص.نب. م. ج. لُک و سطبر .

**پرېړول**(prirawə́l) مص. مت. لُک و ضخیم ساختن..

**پرېړېدل** (priredə́l) مص.ل. لُک ، سطبرشدن ، ضخیم شدن .

**پرېښودل** (preṣuwə́l) مص.مت. گذاشتن، ترک کردن، ماندن، رها کردن.

**پرېښوول** (preṣuwə́l) مص.مت . گذاشتن ، ترک کردن ، ماندن ، رها کردن.

**پریکړه** (prékṛa)ښځ .م. (ج. پریکړې ) ۱)فیصله قطع ، ۲) قیافت خوب و قشنگ.

**پری کول** (prekawə́l) مص مت.بریدن، قطع کردن.

**پری کېدل** (prekedə́l) مص.ل. قطع شدن.

**پرېمان** (premān) نر.م. ۱) بسیار، فراوان؛۲) مشیمه که نمونه هم گویند.

**پرېمینځل** (preminjə́l) مص .مت. شستن.

**پرېواته** (prewātə́) نــــــر.م. ۱) افتیدن، خوابیدن، و دراز کشیـــدن، ۲) غروب.

**پرېوان** (prewān) نــــــر.م. ( ج. پرېوانونه) ۱) بسیار، ۲) جفت جنین، خس حیوان .

**پرېوتل**(prewatə́l) مـــص.ل. افتادن، خوابیدن.

**پرېولل** (prewələ́l) مص.مت . وګ. پرېمینځل.

**پړ** (paṛ) ص.نر.م. (ج. پړه) مغلوب، ملامت .

**پړانګ** (pṛāng) نـــــــــر.م. ( ج پړانګان) پلنګ.

**پړاو** (paṛáw) نر.م. ( ج. پړاوونه) ۱)منزل، رباط. ۲) مرحله.

**پړپوس**(parpús) نــــــر.م. (ج. پړپوسونه) شش؛ مجازاً بطور صفت به معنای شخص رذیل و دنی.

**پړسوب**(paṛsúb) نر.م. ورم، آماس.

**پړسول** (paṛsawә́l) مص.مت.
۱) آماس دادن، از باد پر کردن
۲) . ۲) به قهر اوردن.

**پړسېدل** (paṛsedә́l) مــص.ل. ۱) اماسیدن، از باد پرشدن.۲) قهر شدن. غصه ناک شدن.

۱) **پړک** (paṛk) نر.م. یک جماعت از ده الی بیست نفر؛ ۲)رمهٔ کوچک گوسفندان ؛ ۳) لرزه اضطراب؛ اندازه و مساوات در عمر.

۲) **پړک** (pṛәk) نر.م. یک لای مروارید سفته.

**پړک مشر** (parkmәšә́r) نر.م. ( ج. پړک مشران) قوماندان بیست تا سی نفر.

**پړکه** (paṛká) ښځ.م. ( ج. پړکې)تلکک چوبی گنجشکها.

**پړکه** (pṛáka) ښځ.م. اواز رعد و برق، تابش، درخشندگی .

**پړکول** (paṛakawә́l) مص.مت. ۱) تا بانیدن، درخشاندن، ۲) کف زدن .

**پړکېدل** (paṛkedә́l) مص.ل. تابیدن، درخشیدن،

**پړمخی** (paṛmáxay) ق. به روی افتاده.

**پړنګ** (pṛәng)ق. ۱) صــــوت ابتدائی گریه ۲)منا فق .

**پړول** (parawә́l) مص.مت. ملامت کردن؛

**پړه** (pṛa) ښځ.م. ( ج. پړې) الزام، ملامتی، مسئولیت.

**پړی** (páṛay) نر.م. (ج. پړي) ریسمان .

**پړېدل** (paṛedə́l) مص.ل. ملامت شدن.

**پړېنګ** (pṛeng) ق. ۱) صوت گریه ابتدائی، ۲) ماده سفیدیکه قبل از زائیدن ازفرج گاومی بر اید.

**پزه** (pə́za) ښځ .م. (ج. پزې) بینی .

**پسات** (pasā́t) نر . م .(ج. پساتونه)فساد ، شر .

**پس پسی** (puspusáy) نر . م سر گوشی .

**پستول** (pastawə́l) مص . مت. نرم کردن.

**پستېدل** (pastedə́l) مص . ل. نرم شدن غم واندوه ، پریشانی ، غصه .

**پسخاک** (pasxā́k نر.م. غم واندوه ، پریشانی ، غصه .

**پسخول** (pasxawə́l) مص . ل مغموم ساختن ، به غصه اوردن.

**پسخېدل**(pasxedə́l) مص مت.مغموم شدن ، به تمام مشتقات .

**پسرلی**( psarláy) نر . م . (ج. پسرلي) بهار.

**پسول** .( psol ) نر . م . ج . زیور

**پسولل** ( psolə́l ) مص . مــــت. زینت دادن .

**پسولول** ( psolawə́l ) مص . ل. تزئین.

**پسه** (psə)نر . م . ( ج پسونه ) گوسپند .

**پشه** ( pə́ša ) ښځ . م ( ج پشې) گربه.

**پشیرلی** ( pšerláy ) نـــــر . م ( ج پشیرلي)گوسفند ..

**پښ** ( pəṣ ) نر . م .(ج پښان)اهنگر.

**پښت** ( pəṣt ). نر.م. نژاد .

**پښانګه** ( pṣā́nga ) ښځ .م. (ج. پښانګې) ۱ ) کنج ، (۲ پاچه تنبان.

**پښتانه** ( paṣtānə́ ) نر . ج.افغانان .

**پښتو** ( paṣtó ) سځ .م. زبان ملی افغانی وتمام صفات وعنعنات ملی پشتونها .

**پښتون** ( paṣtū́n ) نـــــر . م . ( ج پښتانه)افغان ، باجمعی صفات افغانی

**پښتونخوا** ( pəṣtūnxwā́ )ښځ.م.

مسکن افغانها.

**پښتي** ( pustáy ) ښځ . م .قبرغه

**پښه** .( pṣa ) ښځ . م . ( ج پښې )

۱ ) پای ۲ ) طایفه ، شعبه قوم .

**پښیدل**( puṣedә́l )مص . ل .

فش فش کردن ماروغیره .

**پښیمانه** ( pṣimāna ) ص . نب .

پشیمان کردن .

**پښیمانه کول**

( psimānakawә́l )مص.مت .

پیشمان کردن.

**پښیمانیدل**( psimānedә́l )

مص . ل . پشیمان شدن ، ندامت کردن

**پک** ( pak) نر.م .(ج.پکان) کل ،

اقرع.

**پکتیا** (paktyā́ ) ښځ.م. ولایت

جنوبی افغانستان.

**پگړه**( pagә̣ra ) ښځ .م.( پگړې )

حشر، کار دسته جمعی بدون مزد..

**پگړی** ( pagṛә́y ) ښځ . م .

دستار .

**پلټل** ( palaṭә́l ) مص . مت.پالیدن.

تفتیش کردن.

**پلار** ( plār ) نر . م .(ج . پلرونه )

پدر.

**پلار گنی** (plārganә́y

ښځ .م. ، پدر خیل ، قوم پدری .

**پلته** .( paltá ) ښځ .م.(ج پلتې)

فیتله چراغ،یک دانه چوبک گوگرد.

**پلټل** ( palatal ) مص . مت . پالیدن

تفتیش کردن .

**پلټونکی** ( palatū́nkay )نر .

م . (ج پلټونکي ). مفتش ، بازرس .

**پلک** ( palk ) نر . م . ( ج.پلکونه )

ودان ، جکش کلان اهنگران.

**پلمه**( palmá ) ښځ . م . ( ج پلمې )

بهانه.

۱)**پلن**( plan) ص.نر.م. ج. عریض ،

پهن، بردار..

۲) **پلن** ( Palán) نر . م .پیاده ،

درمحاوره کنونی مستعمل نیست .

**پلندر** ( plandár ) نر . م . پدراندر .

**پلنول**( planawә́l ) مص . مت .

۱ ) عریض کردن ، هموارکردن .

(۲) مج به زمین افگندن شخص ولت کردن .

**پلنېدل** ( planedə́l) مص . ل عریض شدن ، هموارشدن .

**پلو** ( paláw ) نر . م . ( ج پلوونه ) ۱ ) گوشه چادر، ۲ ) پهلو ، ۳ ) طرف وجانب ، ۴ ) پرده خیمه .

**پلورل**( plorə́l )مص . مت . فروختن.

**پلورنځی**( ploranǰáy ) نر . م . فروشگاه .

**پلوشه** ( palwašá )ښځ . م . ( ج پلوشې ) تجلی ، نور ، نورافتاب ، شعاع .

**پلوی** ( palawáy ) نر . م . ۱ ) طرفداران ۲ ) همسایه ، پلوان شریک ۳ ) شیرتوت .

**پمن** ( pamán ) ص . نر . م . ج گرگین.

**پناه** ( panā́ ) ښځ . م . ۱ ) غائب وناپدید ۲ ) پاشش۳ ) باران میده .

**پنځ** ( panǰ )نر . م . خلق ، افرینش

**پنځول** ( panǰawə́l ).مص . مت. آفریدن ، تخلیق ؛ ۲ ) پرکردن جوال وغیره ، ؛ ۳ کامیاب ساختن .

**پنځیدل** ( panǰedə́l )م .مص . ل . ۱ ) آفریده شدن، خلق شدن ،۲ ) کامیاب شدن ، ۳ ) پرشدن .

**پنډ**( pənḍ ) نر . م . ۱ ) لَک ، ۲ ) تنومند ، ۳ ) خشن.

**پڼه** (paṇá) ښځ .م. کفش – پیزار.

**پنډ** ( panḍ ) نر . م . پشتاره .

**پنډغالی** ( panḍǧā́lay ) نــر . م.( ج.پنډ غالي ) ۱ ) فراهم گاه حیوانات ؛ ۲ ) کمپ مهاجرین .

**پنډوس** ( panḍós )نر . م . گوی ، توپ ، توپ بازیچه.

**پنډوکی** ( panḍū́kay ) نر . م . ۱ ) پشتاره خورد ، ۲ ) فتراک .

**پنډیدل** ( pə̄nḍedə́l ) مص . ل مسکون شدن ۱ ) فراهم شدن گاو ویاگوسنفدبراي ارام کردن ۲ ) چاق ولَک شدن .

**پڼول** ( paṇawə́l ) مص . مت . ابیاری کردن ..

**پڼه** ( paṇá )ښځ . م . کفش ،پیزار
**پڼه** ( páṇa ) ښځ . م. ابیاری کشت.
**پو** ( pa )نر . م . ۱ ) پف ، ۲ ) اتش .
**پوپنا** ( pūpanā́ ) ص . نب . نیست ونابود . تباه ، محو .
**پوټکی** ( puṭókay ) ——— . م . ( ج پوټکي ) پوست .
**پوچ** ( pūč ) نر . م . ج . ۱ ) فحش ۲) بی مغز .
**پوچ خولی** ( pūčx ūláy ) ص . نر . م . ج . بدزبان ، فحاش و یاوه گوی.
**پوخکی** ( puckáy ) ـــــر . م . ( ج پوخکي ) نر مه کوش .
**پوخه** (púca) ښځ .م. .خام پنیر .
**پوخ** ( pux ) نر . م . ( ج پاخه ) پخته ، رسیده ، بالغ ، ۲ ) مج . کلان سال، قایم ، مظبوط.
**پوډري** ( poḍarí ) ص . نب . هیرویینی ، نیشه یی.
**پور** ( por ) نر . م . ( ج . پورونه ) قرض . دین ، وام .
**پوروړی** (porawə́ṛay) نر.م. قرضدار ، دین دار، وام دار.
**پورته** ( pórta ) ق . با لا ، بلند.
**پورته کول**( portakawə́l ) مص .مت . بالاکردن ، بلند کردن .
**پورته کیدل**( portakedəl ) مص . ل . با لا شدن، بلند شدن .
**پورول**(porawə́l) مص . مت . قرض کردن.
**پوره** ( pūrá ) ص . نب . کامل ، تمام.
**پوره کول** ( purakawə́l ) مص مت . به انجام رساندن ، تمام کردن .
**پوره کیدل** ( purakedə́l ) مص . ل . به پایان رسیدن ، تمام شدن .
**پورې** ( puri ) ق ۱ ) با ، تا ، به او ۲ ) بسته به واو معروف نیز تلفظ می شود.
**پورې ایستل** ( puriistə́l ) مص . مت . از دریاوجوی عبوردادن .
**پورې وهل**( puriwahə́l )مص . مت ، تیله دادن .
**پوړ** ( puṛ ) نر . م . ( ج پوړونه )

۱)طبقه ، مرتبه ، منزل ، صف ، ۲ ) زولانه وپای بند که انرا (شکیل)گویند.

**پوړمخي**( purmaxi ) ق . ډ ګډ .

**پوړني** ( puṛə́nay )نــــــم .
( ج پوړني) چادر زنانه .

**پوړۍ** ( puṛə́y ) ښځ . م . پــــله نرد بان ۲ ) چوکی بضمه پاوواو معروف نیز گویند.

**پوسپوسي** ( puspusáy ) نر .
م . سر گوشی.

**پوسپوسي کول**
(puspusaykawə́l)مص . ل .
سرگوشی کردن .

**پوست** ( post ) نـــــــــر . م .
( ج پاسته ) نرم .

**پوستکی** ) postə́kay ) نر . م .
قشر ، پوست.

**پوستول**( postawə́l ) مص . مت
۱ ) پوست کردن ، ازقشر کشیـــــدن،
۲ ) نرم کردن.

**پوښ**( poṣ )نر . م .( ج .پوښونه )
۱ ) غلاف ، ۲ ) لباس ۳ ) لباس خاص عروس .

**پوښاک** ( puṣāk) نر . م . لباس ، جامه.

**پوښتل** ( puṣtə́l ) مص . مت . ل .
پرسیدن.

**پوښتورګی**( poṣtawə́rgay )
نر . م . گرده.

**پوښتنه**(pusṭə́na) ښځ .م. پرسش ،سوال ، پرسان ، ۲) استعلام ۳) عیادت مریض.

**پو ښتۍ**( puṣtə́y ) ښځ . م . ج .
۱ ) قبرغه ، ۲ ) نوعی از سر بافتکی زنان است .

**پوښتیدل** ( puṣtedə́l)مص . ل .
پرسیدن .

**پو ښښ** ( posə́ṣ ) نر . م .
پوشش ، سقف خانه.

**پوښل**( poṣə́l ) مص . مت پوشش کردن سقف خانه .

**پوکانه** ( pukāṇa ) ښځ .م.
(ج.پوکانې). ۱)حباب ۲) مثانه ،۳) روده وانبان .

**پوکل** ( pukә́l ) مص . مت . پف کردن .

**پوکول** ( pukawә́l ) مص . مت پف کردن ، دمیدن .

**پوکی** ( pũkáy )نر .م ۱) پف ، پفک زرگران ، ۲ ) تصفیرپک به معنای گل واقرع .

**پوکیدل** (pukedә́l ) مص . ل . ۱ ) سوختن ، ۲ ) پف شدن .

**پول** ( pul ) نر . م ( ج پلونه ) پل .

**پولپولک** ( pulpulák )نر . م فلفل الماه . بته ایست تلخ که در کنار جویها می روید ، برگهای ان به مانند بید وبرای امراض جلدی به کار میبرند .

**پوله** ( pũla ) ښځ . م . گل چشم ، خط بانقطه رویت.

**پونده** ( pũnda ) ښځ . م . ( ج پوندې ) ۱ ) پاشنه کری ، ۲ ) تانال شمشیر.

**پونده** ( pawandá ) نر . م . مالدار کوچی وبادیه نشین .

**پونډکه** ( punḍә́ka ) ښځ . م . سبزی که از شبدر پخته می شود.

**پونډی** ( punḍәy ) ښځ . م . ج . ساق ؛ ۲ ) نبات سبزرنگ است که گل سفید دارد مردم انرا مانند ارغوزک پخته کرده میخورند . ۳ ) صندوق چوبی.

**پوول** ( powál ) مص . مت . چراندن.

**پوونده** (powәndá) نر.م. ج. شبان ،چوبان.

**پوه** ( poh ) ص . نـــــب . ( ج.پوهان ) فهیم ، دانشمند ، دانا.

**پوهاند** ( pohã́nd ) نر . م . استاد ، عالم ، دانا ، پروفیسور.

**پوهنتون** (pohantṹn) نـــــر . م . یو نیورستی ، دانشگاه .

**پوهنځی** .pohanǰáy ) نر . م . فاکو لته ، کالج.

**پوهنه** (pohә́na )ښځ . م . فهمیدگی ، علم ، دانش.

**پوهول** ( puhawә́l )مص . مت . دانسته کردن ، فهماندن.

**پوهه** ( póha ) ښځ . م . ( ج .پوهې )
١) خرد، دانش ، علم ،٢) زن دانشمند .

**پوهېدل** ( pohedә́l ) مص . ل .
دانستن .

**پویول** ( poyawә́l ) مص . مت .
فهماندن .

**په یاد** ( payād ) ق . به خاطر ،
یاد کرده .

**په یادول** ( payādawә́l ) مص .
مت . یادکردن ، از بر کردن ، حفظ
کردن.

**پی** ( pay ) ښځ . م . ١ ) شیر ،
لبنیات ،٢ ) نباتیست شیردار.

**پیاوړتوب** ( Pyāwaṛtób )نر . م
. قوتمندی ، ذکاوت .

**پیاوړی** ( pyāwә̄ṛáy ) ص .نر . م
. ( ج پیاوړي).قوی ، ذکی.

**پیت** ( pit )ص . نر . م . پهن ،
پخش پچق .

**پیت پزی** ( pitpázay ) ص . نر
. م . بینی پچق . بینی . پهن .

**پیتول** ( pitawә́l ) مص . مت .
پچق کردن ، پهن وهموار کردن.

**پیتېدل** ( pitedә́l )مص . ل . پچق
شدن ، پهن شدن .

**پېچل** ( pečә́l ) مص . مت .
پیچاندن.

**پېچموزی** ( pečmū́zay )نر .
م . تمسخر، استهزاء .

**پېچومی** ( pečū́may ) نر . م .
١ ) سربالایی ، عکس نشیب .٢ ) کج
گردشی کوتل وغیره.

**پېڅول** ( pecawә́l ) نـــر . م .
. ١ ) پرده خیمه وغژدی . ٢ ) فرش
کلان بوریایی.

**پیڅه** ( pica ) ښځ . م . حاشیه لباس ،
دامن.

**پیداکول** ( paydākawә́l )مص
. مت . پید اکردن ، یافتن .

**پیدایښت** ( paydә̄́yә̄ṣt )نـــر . م
. افرینش ، یافت ، پیدایش .

**پیر** ( pir )نر . م ( ج . پیــــرا ن
١ ) مرشد ، پیشوا ، شخص مقـــدس
٢ ) سالخورده ٣ ) دوشنبه .

**پېر** ( per ) نر . م . ١ ) گردش .

نوبت ، دور ، حالت ؛ ۲ ) طرز شکل.

**پېرړ** ( perə́r ) نر . م . لک ، سطبر .

**پېرزو** ( perzó ) ص . ښځ . م . روا داری .

**پیرکی** ( pirakáy ) نر . م . بولانی

۱) **پېرل** ( perál ) مص . مت . بوریا وچارپا یی بافتن.

۲) **پېرل** ( perə́l ) مص . مت . خریدن .

**پېرنګ** ( peráng ) نـــر . م . فرنگ وتمام اروپا.

**پېرنګی** ( perangáy ) نـــر . م. .( ج . پیرنګیان).نصرانی ، اروپایی .

**پېروتی** ( perwatə́y ) ښځ . م . گیاه عشق پیچا ن ، پیچک .

**پېرودل** ( perodə́l ) مص . مت . خریدن.

**پېرونکی** ( perūnkay ) نـــر . م . ۱ ) بوریاباف . ۲ ) خریدار.

**پېروی** ( perāway ) نر . م . قیماق.

**پیره** ( payrá ) ښځ . م . پهره،تهانه ، ۲ ) گردش ، نوبت ، دفعه.

**پېری** ( peráy ) نر.م. پری ، جن ، دیو.

**پېریان** ( peryān ) نر . م . ج. پری،جن.

**پېریانی** ( peryānáy ) ص . نر . م .جنی.

**پېړ** ( peṛ ) نر . م . هاوند چوبی ، کنده جهاز ، ۲ ) لک وسطبر ، ۳ ) کاه سفید گندم و غیره ، ۴ ) جهاز وعمل شیره کشی.

**پېړمار** ( permār )ص . نر . م. شخص شربت کش نیشکر .

**پېړمن** ( permán ) نر . م . شخص تنبل وفربه .

**پېړو** ( perú )ق . حق الزحمه چوپان.

**پېړه** ( perá ) ښځ . م . زواله خمیر ، ۲ ) نوعی از شیرینی که شپیره نیز گویند.

**پېړۍ** ( perə́y ښځ . م . مص . مت ، ۱ ) چوکی ، کرسی ، ۲ ) صَفـهٔ نشیمن، ۳ ) قرن،صده .

**پېزل** (pezə́l)مص.مت . رفو کردن.

**پېزوان** ( pezwān )نر . م . یلاق

، زیوریکه دربینی اویزان وبالای لب میباشد ۲ ) ریسمانیکه دربینی گاو وشتر اندازند ودر شاخهای او می بندند

**پېزوانی** ( pezwānáy ) نر . م . چوبک یوغ.

**پېژند ګلوي**(pežandgalwí) ښځ . م. تعارف ، شناسایی .

**پېژندل** ( pežandə́l ) مص . مت شناختن .

**پېژندوی** ( pežandóy ) ص . نر . م .عارف ، شناسا ، معروف .

**پیش پړانګ**( pišparāng ) نر . م . گربه صحرایی .

**پیشو**(pišo ) ښځ .م .(ج.پیشوکاني ) گربه . پشک.

**پیشوا** ( pišwā́)نـــــــر . م . ( ج پیشواګان ) رهبر.

**پېښه** ( pésa ) ښځ . م . (ج پېښې ) واقعه ، حادثه ، تصادف.

**پېښېدل** ( pesedə́l )مص . ل . ۱ ) عارف شدن ، اتفاق افـــــتادن ، ۲ ) واقع شدن ، ۳ ) امدن تصادفی.

**پېغله** ( péǧla ) ښځ . م.(ج پېغلې ) دختر باکره ، دوشیزه.

**پیغور**( payǧór )نر . م . طعنه ، عیب وزشتی.

**پیغوررور کول** ( payǧorwarkawə́l) مص .مت . طعنه دادن.

**پیکو** ( paykó ) نـــــــر . م . ۱ ) پایکوب شالی وغیره . ۲ ) ماشین سیمیان.

**پیکه**( piká )ص . نـــــــب . ۱ ) کم رنگ،رنگ شکسته ، ۲ ) بي مزه ، شرمنده ، منفعل .

**پیکی** ( pikáy ) نـــــــر . م . ( ج پیکي) موی پیشانی ، زلف دوشیزگی وبچه گی که پیش روی بمانند.

**پیل** ( payl ) نر . م . اغاز . شروع

**پیلامه** ( paylāmá )ق .(ج پیلامې ) علامه ،نشانی۲ ) بنیاد ۳) خوی۴ ) نتیجه

**پیلوځی** ( pilwə́ǰay ) نر . م . درگیران.

**پی مخی** ( paymaxay )نر . م . ( ج پیمخی ) حسین ، خوبرو ، خوشنما ، قشنگ مخی مص . مت . سفتن ، نظم کردن .

**پېیل** (peyál) مص .مت. سفتن ،نظم کردن.

# ت

**ت** (te) ښځ .م. حرف پنجم الفبای پښتو است که ارزش ابجدی ان (۴۰۰) است.

**تاخچه** (tāxčá) ښځ . م . (ج تاخچې) طاق .

**تارپه تار** (tārpətār) ق . متشتت منتشر ، پراګنده.

**تارپه تارکول**

(tārpətārkawə́l) مص . مت . متشتت کردن ، منتشرکردن ، پراګنده کردن .

**تارپه تارکيدل**

(tārpətārkedə́l) مص . ل .متشتت شدن ، منتشرشدن ، پراګنده شدن .

**تارو** (tārū́) نر . م .(ج تاروګان) تيهو .

**تاړ** (tāṛ) نر . م . ۱) غم ،شبخون ؛ ۲) خرسنګ کلان ۳) تاراج .

**تاړاک** (tāṛā́k) نر . م . (ج تاړاکونه) ۱) شبخون ، غم ، مصيبت، زحمت؛ ۲) تاراج .

**تاسي** (tāsí) ض . ج . نر . ښځ . شما .

**تالا** (tālā́) نر . م . تاراج .

**تالنده** (talánda) ښځ . م . (ج تالندې) ،رعد،برق .

**تاڼه** (tāṇá) ښځ . م . (ج تاڼې) تهانه . پهره دارخانه.

**تاڼدار** (tāṇadā́r) ص . نر . م . پهره دار.

**تاوول** (tāwawə́l) مص . مت ۱) تاب دادن ۲) چرخ دادن.

**تاويدل** (tāwedə́l) مص . ل . تابيده شدن ، تاب خوردن ، ۲) چرخ

خوردن ،طواف کردن .

**تبخی** ( tabaxáy )نـــــر . م .
تابهٔ نان پزی .

**تبرګی**( tabərgáy) نـــــر . م .
( ج تبرګي )تبر .

**تبک**( tabák ) نر . م . یکنوع
مرضی است که در دهن وپای حیوانات
پیدامی شود .

**تبه** ( tába ) ښځ . م . **تب** ،

**تبی** ( tábay )نـــــــر . م .
( ج تبي ) داغ روغن .

**تبۍ**( tabáy ) ښځ . م تابه .

**تپاک** ( tapāk )نـــــــر . م .
( ج تپاکو نه ) ۱ ) حرص ۲ ) بی قراری
، جوش محبت ، توجه زیاد .

**تپل** (tapál )مص . مت ۱ ) ګِل
وغیره را بردیوال چسپانیدن۲) لابلای برلای
چسپانید ن ګِل وغیره .

**تپوس** ( tapús ) نـــــــر . م .
( ج تپوسونه ) پرسان ، جستــــــجو
استفسار.

**تپیدل** (tapedál )مص . ل .
تپیدن ، ناارام شدن .

**تت** ( tat ) ص .نـــــر. م . ج .

۱ ) پیوسته . ګنجان ، انبوه ۲ ) کم نور
، چراغ کم روشنی ۳ ) سایه غلو.

**تتۍ** ( tatəy ) ښځ . م . ۱ ) سینه
شتر؛ ۲ ) نوعی از کاسه وپیمانه ګندم
وغیره که چوبی میباشد ؛ ۳ ) ابدان
سنګی ،باران درکوه.

**تخرګ** ( t xarg) نـــــر . م .
( ج .تخرګونه) بغل .

**تخنول** ( taxnawál ) مص . مت.
دغدغه کردن ، تختخک کردن.

**تخنیدل**( taxnedál )مص . ل .
دغدغه شده .

**تخه** ( táxa )ښځ .م . (ج تـــخي)
دُرد دوغ .

**تخیدل**( taxedál )مص . ل
دغدغه شدن .

**تراټ** ( trāṭ ) .نـــــر . م .
( ج تراټونه ) تاخت ، دویدن تیـــز ،
۲ ) مهمیز ۳ ) بوته ایست که ګل انـــرا
( بوس ) میګوید وبه ان کالامشویند وبه
بوته اش مشکهارا آش میدهند
واګر شترخسته انرا بخورد فوراً
هلاک میشود ؛ ۴) دزه بازی .

تراږه ( trāẓá ) ښځ م . قاش خربوزه و...

تراوسه ( tarósa ) ق . تاهنوز .

تربګني (t rbagani )ښخ . م .

(ج تربګنۍ) ۱) عموزادګی ۲ ) مجازاً مخاصمت ودشمنی.

تربور ( tarbūr ) نـــــر . م .

( ج تربوران ) پسر کاکا ،عموزاده.

تربورګلوي( tarbūrgalwí )

ښځ . م ( ج تربورګلوۍ) ۱ )عموزادګی ۲ ) مجازاً همچشمی ، مخاصمت ،

دشمنی .

ترپ ( trap ) نر . م.۱)اواز افتادن چیزی برزمین ۲ ) جست وخیز.

ترپایه( tarpāya )ق . الی . اخر ،

الی نهایت .

ترپل ( trapál ) مص . مت . دویدن غیرمنظم وجست وخیززدن .

ترپلل( traplal ) مص . ل .

ګریختن از جنګ به صورت افتـــــا ن وخیزان . دویدن وسیل کردن.

ترپول ( trapawál )مص . مت .

چیزی را بصورت غیر منظم کوفتن و

ماندن .

ترټل ( tratál ) مص . مت . راندن

توبیخ کردن.

ترځ ( traǰ ) ق .در بین ، ضمن .

ترخه( tárxa )ښځ . م . درمند ، شیح، بته تلخ که در دوا استـــــعمال میشود. .

ترخه( rarxá )ص . ښځ . م .

( ج ترخې ) تلخ.

تړی ( traṛí )نر . ج . ابر باریک دروقت تموز.

ترسره کول ( tərsarakawál )

مص . مت . به پایان رساندن ، انجام دادن.

ترسېری( tarseráy ) نر .م .

(ج . تر سیري).افسار اسپ وغیره .

ترشا ( tərša̍ )ق . دنبال ، درپشت درعقب.

ترښځ ( t(a,ə) rṣág ) ښځ .م.

تیشه.

ترکاڼ ( tarkāṇ ) نـــــر . م .

نجاری.

ترکاڼی ( tarkāṇí )ښځ . م .

بخاری .

ترله( tərlá )ښځ . م . ( ج ترلې ).

دختر کاکا.

**ترنج** ( turúnj ) نر . م . یک نوع میوه است.

**ترنگړ** ( trangáṛ ) نر.م. (ج.ترنگړونه) کاه کش.

**ترنگول** ( trangawə́l ) مص . مت . زدن زنگ وسارنگ و امثال ان.

**ترنیکه** ( tə́rnikə ) نـــــر .م . پدر پدرکلان.

**ترور** ( tror ) ښخ . م . ( ج تر ندې) خاله . عمه . خواهرپدر یا مادر.

**تروږزی** ( trorzáy ) نر . م . ( ج تروږزي) پسر عمه ، پسرخاله.

**تروږمی** ( troẓmáy ) ښخ . م . تاریکی . شبی که ماهتاب نباشد .

**ترول** ( tarawə́l ) مص . مت . رم دادن .

**تروې** ( torwé ) ج ... ۱) تریو بمعنی ترش ، ۲ ) دروغ.

۱ **تره** ( tra ) نر . م . ( ج ترونه ) کاکا، برادرپدر .

۲ **تره** ( tra ) ښخ . م . ( ج .ترې) ناوه.

۳ **تره** ( trah. ) ښخ . م . نفرت ، ترس ، سهم.

۴ **تره** ( tərá ) ښخ .م . وجود ، بدن.

**تره کی** ( tárakay ) نـــــر . م ( ج ترکي ) نام یک قبیلهٔ افغانها .

**تری تم** ( taray tám ) ص . نب . ناپدید .

**تریخ** ( trix ) ص. نـــــر .م . ( ج ترخه )تلخ.

**تریخول** ( trixawə́l ) مص . مت . تلخ کردن .

**تریخی** ( trǐxay ) نـــــر . م . ( ج تریخي) زهره ، مراره .

**تریخېدل** ( trixedə́l ) مص . ل تلخ شدن.

**ترېدل** ( taredə́l ) مص . ل . تورخوردن.

**تریندراه** ( trindā́ra ) ښخ . م . ( ج تریندارې )تنداره ، زن عمو .

**ترینگلی** ( tringálay ) ص . نر. م . ( ج ترینگلي )سخت . عبوس .بخیل .

**تریو** ( triw ) نر . م . ( ج . تروه )

ترش ، شور .

**تریوول** ( triwawә́l ) مص . مت . ترش نمودن ، ترش ساختن.

**تریوېدل** ( triwedә́l ) مص . ل ۱ ) ترش شدن ، ۲ ) عبوس شدن.

**تړ** ( taṛ ) نر . م . ۱ ) شـــرط ، ۲ ) بندچیزی ، سد ، ۳ ) عقد ، گره ، بست، ۴ ) بندآب ، ۵ ) سنگ کلان ، ۶ ) قرارداد.

**تړانګه** ( taṛā̄nga ) ښځ . م . ( ج . تړانګې ) ۱ ) تریشه دراز ، جامه کهنه؛ ۲ ) تریشه دراز زمین .

**تړاو** ( taṛā́w ) نـــر . م . ( ج.تړاوونه )۱)طناب جریب کشی وغیره ۲)نسبت ، ارتباط علاقه.

**تړل** ( taṛә́l ) نر . م . بستن ، بندکردن .

**تړم** ( taṛm )ص . نر . م . شیر گرم نیم گرم .

**تړون** ( taṛū́n ) نـــر . م . ۱ ) معاهده ، پیمان ، قرارداد ، عقد ، بندوبست ؛ ۲ ) گره ؛ ۳ ) طرز بستن.

**تړه** ( táṛa ) ښځ . م . ۱ ) راه ، طریق ، ۲ ) زمین سخت ، ۳ ) اراده ، قصددل ، ۴ ) پیمان ، عهد بســـتگی ، ۵ ) تپه که سرتیز داشته باشد.

**تږی** ( tә́ẓay ) ص . نر . م . تشنه

**تش** ( taš ). ص . نر . م . ج . خالی، تهی .

**تش لاسی** .( tәšlā́say ) ص . نر . م . دست تهی ، دست خالی.

**تشول** ( tәšawә́l ) مص . مت . تهی کردن ، خالی کردن.

**تشی**( tә́šay ) نر . م .( ج تشي ) تهیگاه انسان وحیوان ، خالیگاه.

**تکړه** ( takṛá ) ص . نب . تندرست ، قوی ، تواناو مجازا ماهر .

**تګ** ( tag ) نر . م . رفتار .

**تګ راتګ** ( tagrā̄tág ) نر . م . رفت وآمد .

**تګلاره** ( taglā́ra ) ښځ . م . خط مشی .

**تل ۱**)( tal ) نر . م . عمق ، پائین ، ۲) پامال ، قعر ، ۳ ) ته نشین ، دَرد.

**تل ۲** ) ( tәl )ق . همیشه ، دایم ، جاوید .

**تلتک** ( talták ) نر . م . لحاف .

**تلل** ( tləl ) مص . ل . رفتن.
تلل (talə́l) مص.مت. وزن کردن .

**تلوار** ( talwā́r ) نر . م . عجله ، تعجیل ، شتاب .

**تلوسه** ( talwasá ) ښځ . م . ( ج تلوسې ) بیتابی، حرص ، بیطاقتی .

**تلول** ( talawə́l )مص . مت . بریان کردن در روغن.

**تلول** ( talawə́l )مص . مت .
۱) به عمق بردن ، ته نشین کردن .
۲ ) چپه کردن آب وغیره.

**تله** ( tə́la ) ښځ . م . ( ج . تلې ) ترازو.

**تلی** ( taláy ) نر . م . ( ج . تلي ) ۱) کف پیزار . کف پا پوش ، ۲ ) پارچه چرس پخته ، ۳ ) جای نهادن کنده زیر چرخ اسیا ، ۴ ) پرده بیرونی شـــــکم. ۵ ) صحن وجای خرمند ، ۶ ) سفوف ، ۷ ) سطح زمین ، ۸ ) قسم از باربندی بته وغیره ، ۹ ) خس دندان ، خلال .

**تلین** ( talín ) نر . م . سالگره مرده .

**تم** (tam )نر . م . استاده ، معطلی، تمام.

**تم** ( tam ) نر . م . ( ج تمونه) تیر .

**تمام** ( tamā́m )ص . نر . م . ج . اتمام . اختتام .

**تمامول** ( tamāmawə́l )مص مت .تمام کردن .

**تما مېدل** (tamāmedə́l ) مص . ل. تمام شدن.

**تمبه** ( tambá )ښځ . م . ۱ ) تنبه دروازه ؛ ۲ ) ستون عمارت، ۳ ) مج . مُصر ، اصرارکننده.

**تمبېدل** ( tambedə́l ) مص . ل . یک تکه بزرگ از کوه ودیوار وغیره جداشدن .

**تم ځای** ( tam ǰā́y ) نر . م . ایستگاه ، جای استاد شدن موتر.

**تند**( tund ). ص . نر . م . ج . تیز.

**تنداره**( təndā́ra ). ښځ . م . زن کاکا .

**تندر** ( tə́ndar )نـــــــــر . م .( ج . تندرونه ) صاعقه .

**تنده** ( tə́nda )ښـــــــــــخ . م

. ( ج . تندې ) تشنگی .

**تندی** ( tandáy ) نـــــر . م .
۱ ) پیشانی ، ۲ ) چوچه شیر خوار هر حیوان ۳ ) نوکشت ، نوروئیده.

**تنکی** ( tankáy ) نـــــر . م .
( ج . تنکي ) نازک ، تروتازه ، نوروئیده ، نوزاد .

**تنگ** ( tang ) ص . نر . م . ج .
ضیق.

**تنگول** ( tangawə́l ) مص . مت
تنگ ساختن ، ضیق ساختن .

**تنگی** ( tangáy ) نـــــر . م .
۱ ) تنگناودرهٔ کوه ، ۲ ) جوالیـــکه کوچی ها در ان قروت وغیره میاندازند.

**تنگېدل** ( tangedə́l ) مص . ل .
تنگ شدن ، ضیق شدن .

**تنور** ( tanū́r ) نر . م . ( ج تنورونه)
تندور .

**تناکه** ( taṇā́ka ) ښـــــځ . م .
( ج تناکې ) ابله.

**تنۍ** ( taṇə́y ) ښځ . م . تکمه پیراهن وغیره .

**توبره** ( tobrá ) ښـــــځ . م .
( ج . توبرې ) ۱ ) نوعی ازدسترخوان .
۲ ) طبراق جوخوره اسپ .

**توتړی** ( tutṛáy ) ص . نر . م .
الکن .

**توتکۍ** ( totakáy ) ښځ . م .
غوچی ، پرستو.

**توتي** ( totí ) نر . م .( ج . توتیان)
طوطا .

**توخی** ( tóxay ) نر . م . نام یک قبیلهٔ افغانها.

**تود** ( tod ) ص . نـــــر . م .
( ج . تاوده ) گرم .

**تودوخه** ( tawdóxa ) ښځ . م .
( ج . تودوخې ) گرمی .

**تودول** ( tawdawə́l ) مص .
مت . گرم کردن .

**تودېدل** ( tawdedə́l ) مص . ل .
گرم شدن .

**تور ۱** ( tor ) ص . نر . م . ج
۱ ) سیاه ، ۲ ) تاریک .

**تور ۲** ( tor ) نر. م . ( ج . تورونه)
۱ ) تهمت ، ۲ ) رم ، ۳ ) دام نخی پرندگان٬جال .

**توربرېښ** ( torbréṣ ) نر . م . تهدید سلاح و برق شمشیر را به کسی نشان دادن.

**تورتم** ( tortám )نر . م . ظلمات ، تاریکي زیاد .

**تورزن** ( tū́rzan ) ص . نر . م . شمشیری .

**تورن** ( torán )ص .نر . م۱)متهم ۲ ) ق . سیاه .

**تورنجنرال** ( tūranjanrā́l )ص نر . م . رتبه دوهم جنرالی.

**تورول**( torawə́l ) مص . مت . ۱) سیاه کردن ، ۲ ) رمــــــاندن ، ۳ ) متهم کردن.

**توره** ( tū́ra ) بــــــــــخ . م ( ج. تورې ) سیف ، شمشیر.

**توره بلا** ( torabalā́ ) بنخ . م. بلای سیا ه .

**توره تبه**( toratə́ba ) بنخ . م . تب محرقه .

**توره تږخله**( toraṭoxə́la ) بنخ . م.سیاه سرفه.

**توره غاړه** ( toraǧā́ṛa ) بنخ . م . سیاه سرفه .

**توری** ۱.( tóray ) نــــــر . م . ( ج توري ) ۱ ) حرف ، ۲ ) طحال .

**توري**۲ ( torí ) نر . ج . یک قبیله بزرگ افغانها که در کرمه و پاړه چنار زیست دارند.

**تورياليی** ( toryālā́y ) ص . نر . م. ( ج . توريالي ) شمشیری ، شمشیرزن شجاع .

**تورېدل** ( toredə́l ) مص . ل . ۱ ) بدنام شدن ، ۲ ) ســــیاه شدن ، ۳ ) رمیدن.

**تورېی**( toṛə́y )بنخ . م . خاله، مجازاً زن بیگانه .

**توږل** ( tūzə́l ) مص . مت . تراشیدن چوب وامثال ان ، چک کردن.

**توښه** ( toṣá ) بنخ . م . توشه ، اذوقه .

**توغ** ( tuǧ )نر . م .(ج .توغونه ) بیرق ، نشان .

**توغندی** ( tūǧa ndā́y )نر . م ( ج. توغندي ) راکټ .

**توغول** ( tūǧawə́l ) مص . مت.

۱ ) چیزی را دزدانه بردن ، ۲ ) کسی را به زمین مالیدن ، ۳ ) راکت رافیر نمودن.

**توغه** ( tuǧa ) ښځ . م . کفاره ، جواب ، ۱ ) یکنوع میوه .

**توکاڼی** ( tūkāṇə́y )ښځ . م . ۱ ) تف دانی ، ۲ ) نوعی از بازی اطفال

**توکل** ( tūkə́l ) مص .مت . تف کردن.

**توکلي** ( tawakalí )ص . نب . قیاسی ، تخمینی .

**توکم** ( tūkám ) نـــــر . م . ( ج . توکمونه ) نژاد ، نسل .

**توکول** ( tūkawə́l ) مص . مت. تف کردن .

**تومنه** ( túmna ) ښـــځ . م . ( ج . تومني ) ۱ ) ماست مـــایه ، ۲ ) تخم زراعت.

**تون** ( tūn )نـــر . م . ۱ ) جای ، کلمه ظرفیت اســـت ، ۲ ) نوعی از درخت کوهی است .

**تویول** ( tuyawə́l ) مص . مت . ریختاندن .

**توئیدل** ( tuyedə́l ) مص . ل . ریختن .

**ته** ( tə )ض . تو ، ضمیر مفرد مخاطب فاعلی .

**تیار** ( tayā́r ) ص . نر . م . ج . ۱ )اماده ۲ ) فربه ، ۳ ) درست وصحیح .

**تیارول** ( tayārawə́l )مص . مت. ۱ ) اماده کردن ، ۲ ) ســـاختن ، ۳ ) فربه کردن .

**تیاریدل** ( tayāredə́l ) مص . ل ۱ )اماده شدن ، ۲ ) فربه شدن .

**تیتول** ( titawə́l ) مص . مت . افشاندن .

**تیر** ( tir) نـــر . م. (ج . تیرونه ، تیران ) چوب ســـطبر پوشش خانه .

**تېر** ( ter ) ص . نر . م . ج . گذشته ، پیشقدم ، ثابت .

**تېرایستل** ( teristə́l )مص . مت . بازی دادن ، فریب دادن .

**تیر کښ** ( tirkaṣ ) نـــــر . م ( ج. تیرکښونه ) ۱ ) سوراخ کشمش خانه . ۲ ) سوارخهای برج قلعه وسنگر .

**تېروتل** ( terwatə́l )مص . ل . فریب خوردن ، بازی خوردن .

**تېغ** ( teğ) نر . م . ( ج . تیغونه ) نبات نوسرزده .

**تېغنه** ( teğná ) ښځ . م . تابه اهنی.

**تېکی** ( tékay ) نر . م . غلاف شمشیر وکارد وغیره.

# ټ

**ټ** (ṭe) ښځ. م.

حرف ششم الفبای پښتو .

**ټاپو**.( ṭāpū́ ) نر . م ( ج. ټاپوګان )

جزیره کوچک بین دریا .

**ټاپه** ( ṭāpá )ښځ . م . ( ج . ټاپې )

۱ ) مهر ، نشانی ، اله چاپ ، ۲ ) نقش دوخت وغیره .

**ټاپی**( ṭā́pay ) نر . م . ( ج ټاپي )

۱ ) فاصله ، مسافه ، ۲ ) وقت رسیدن قسط قرض .۳ ) دوستی وروابط ، ۴ ) وقت معین ، ۵ ) وقت بحران مرض ۶) توغل سرما وباران .

**ټاټ**.( ṭāṭ ) نر . م . ۱ ) فخر ، ناز ، غرور ، کبر ، خودنمائی ۲ ) چیزخم ومایل ، ۳ ) ) یکنوع رخت .

**ټاټوبی** .( ṭā́ṭobay ) نـــــر . م

( ج ټاټوبي) ارام ګاه ، مسکن وماوی .

**ټاغی** .( ṭāğáy ) ص . نـــــر . م .

( ج ټاغي ) چشم برآمده .

**ټاک** ( ṭāk ) ص . نر . م . ج .

(۱ ) ترش ، ۲ ) ګوسفند نشـــانی شده ، ۳ ) صدای تفنګ وغیره ۴ ) میوه درخت است که از پوســـــت همان میوه قطی

تصوار می سازند..

**ټاکل** ( ṭākə́l مص . مت ۱ ) نشانی کردن ، تعین کردن ، انتـــخاب نمودن ۲ ) مریض رابه چیـــــزی عنعنوی تکمید کردن.

**ټال** ( ṭāl ) نر . م . (ج ټالونه )گاز مخصوص که در مبله وسپـــورت از ریسمان درخت میسازند.۲ ) کپان ترازو، ۳ ) تاخیر ، درنگ ،۴ ) تارعنکبوت.

**ټالول**.( ṭālawə́l ) مص. مت .
۱ ) گاز دادن ۲ ) معطل کردن .

**ټالېدل** .( ṭāledə́l ) مص . ل .
۱ ) معطل شدن ۲) گاز خوردن.

**ټانټه**( ṭānṭá ) ښځ .م .( ج ټانټې ) ناروبته ، ساق جواری .

**ټانګه**.( ṭānngá ) ښـــځ . م .
( ج . ټانګې ) درخت ناک پیوندی .

**ټبر** .( ṭabár ) نر. م . ( ج . ټبرونه ) خاندان ، قبیله عشیره قوم ، ملت خانم .

**ټپ** .( ṭap ) نــر . م . ( ج . ټپونه ) ۱ ) داغ ۲ ) زخم ۳ ) پاروران ۴ ) اواز زدن چیزی،۵ ) بند کردن کتاب .

**ټپال**.( ṭapā́l ) نر . م . قاصد ، پوسته چی ۲ ) احوال وپیغام .

**ټپوس** ( ṭapús ) نـــــر . م .
( ج ټپوسان ) ۱ ) غالموش ، غلیـــواز ۲ ) مجازاً ادم کاهل وسست وتنبل ولک وفربه.

**ټپول** ( ṭapawə́l ) مص . مت .
بند کردن کتاب . برکسی تهمت ویا خیانت بستن وبه ان منســـوب کردن، ۲ ) تمام مسایل تحســـین چیزی را بر کسی بستن .

**ټپه** ( ṭapá ) ښځ . م . ح (ټپې) لنډۍ زبان پښتو ، نوع مخصوص شعر ملی پښتو است .

**ټپي** ( ṭapī́ ) ص . نر.م (ج ټپیان) زخمی ، داغدار .

**ټټار** (ṭaṭā́r) ص.نـــــــــــــر.م .
(ج. ټټاران)مسکر .

**ټټر** (ṭaṭár ) نر.م.( ج . ټټرونه) سینه

ټټو ( ṭatū́ ) نر.م .(ج ټټوګان) یابو.
اسپ خورد و کوتا ه دم و بیکاره.

ټټی (tatay ) ښځ . م.(ج . ټاټی، ټټیانې)
۱) کاروان سرای ، ۲) بیت الخلاء،کناراب ، مبرز.

ټسکوره ( ṭaskóra ) ښځ . م .
کج بیل .

ټغ ( ṭəğ ) نر . م . ۱ ) پرده بالای چشم ، مجازاً مژه . ۲ ) قبای سبز .

ټغر ( ṭağár ) نر . م . (ج . ټغرونه )
۱ ) ګلیم ، ۲ ) بته ایست که بر ګهای یش به مثل بید است .

ټغکی ( ṭuğakáy ) نـــر . م .
( ج . ټغکي ) ۱ ) مرض مرغ مـــرګی ، ۲ ) مرض نزله وریزش . .

ټغن ( tə́ğán ) نـــر . م . ج .
۱ ) سرفه کننده ، ۲ ) شوروغوغاکننده ، ۳ ) شخص بزدل وبی همت .

ټغول ( təğawə́l ) مص . مت .
خفه کردن مرغ وغیره تاکه اواز غیر طبعی بکشد .

ټغېدل ( ṭəğedə́l ) مص . ل .
اواز کشیدن مرغ وغیره در وقت خفه شدن .

ټک ( ṭak ) نر . م . (ج . ټکونه )
اواز تفنګ ، اواز کوفتن دروازه وامثال ان، اواز افتادن چیزی سخـــــت برزمین؛ ۲ ) کوکئ سوزن ودوختن؛ ۳ ) ګوسفند مر ګی ومرض وبای ګوسفند؛ ۴ ) خط فاصل حدود، ۵ ) زمین سرحدی؛ ۶ ) زمین میراث پدری؛ ۷ ) جاي وغار کاشتن تخم خربوزه وغیره در پالیز؛ ۸ ) ساعت چوبی است که دهقانان وقت زوال واستحقاق آب خود را معلوم میکند. ۹ ) تنقید وایراد، ۱۰ ) دانه مهلک که اکثراً در حلق بر اید .

ټک پولی ( ṭik ə́tpulí ) ښځ .
م . عایدی که از درک تکټ بدســـــت میاید .

ټک ټک ( ṭakṭák ) نر . م .
دق الباب ، اواز بهم زدن چیزهای سخت

ټکر ( ṭakár ) نر . م . ۱ ) تصادم ،

سکندری ، ۲ ) خساره .

**ټککه** ( ṭakaká ) ښخ . م .

( ج . ټککي ) شانه ، بیل که بیل زدن در ان پای می نهد .

**ټکنده** ( ṭákanda ) ص . ښخ . م

گرم وسوزان ، صفت چاشت میاید ، مثلاً ټکنده غرمه ( چاشت سوزان )

**ټکنی** ( ṭakanáy ) ص . نر . م .

۱ ) حیوان گهگیر ، ۲ ) متردد ، دودل ، اندیشنه ناک .

**ټکور** ( ṭakór ) نر . م . ضماد ، تکمید ، گرم کردن عضو .

**ټکورول** ( ṭakorawə́l ) مص . مت . تکمید کردن عضو مصاب و در درسیده .

**ټکول** ( ṭakawə́l ) مص . مت .

۱ ) کوفتن ، میده کردن به سبب کوفتن . ۲ ) مج . زدن .

**ټکه** ( ṭáka ) ښخ . م . ( ج ټکي )

( ۱ ) صاعقه ، سنگ . وافت سماوی ؛ ( ۲ ) سانقه بازی .

**ټکی** ( ṭə́kay ) نر . م . ۱ ) خال ، ۲ ) نقطه ، ۳ ) اب کم به قدر چند قطره؛ ۴ ) جای معین ..

**ټګ** ( ṭag ) ص . نــــــر . م .

( ج . ټګان ) شیاد ، غدار ، دغاباز .

**ټګمار** ( ṭagmā́r ) ص . نر . م .

( وګ . ټګ ) .

**ټګی** ( ṭagí ) ښخ . م . فریب ، مکر ، دغابازی .

**ټل** ( ṭal ) نر . م . ۱ ) رفیق وهمراه وشریک ، ۲ ) قبیله ، وطایفــــــه ، ۳ ) مجموعه ودسته چوب چار تراشیکه حمل ان ذریعه دریا می شـــــــود ، ۴ ) دسته هرچیز ،(۵ ) نام شهر یکه در پښتو نستان موقعیت دارد.

**ټلواله** ( ṭalwā́la ) ښــــخ . م .

رفاقت ، همراهی ، گروه رفقا .

**ټمبکه** ( ṭambə́ka ) ښــخ . م .

۱ ) چراغ دان ۲ ) انبار کاه ســـفید ، ۳ ) لانه زنبور عسل .

**ټمبل** ( ṭambal ) نـــــر . م .

١ ) فربه واماسیده ، ٢ ) کاهل وسست.

**ټنډ** ( ṭanḍ ) ص . نـــــر . م .

١ ) اماسیده ، فربه ولُک ، ٢ ) جوانه گاو وگاومیش، ٣ ) نوعی از انگور قندهاری است .

**ټنډه** ( ṭanḍa ) ښځ . م . (ج.ټنډې )

١ ) حامله ماچه خر، حــــــامله زاینـــه ، ٢ ) پیشانی، ٣ ) اجتماع برای مشوره یا بحث ومجلس جهت فساد .

**ټنډېدل** ( ṭandedə́l ) مص . ل .

١ ) ابستن ، حامله شدن زاینه یا حیوان ، ٢ ) اماسیدن وفربه شدن .

**ټنګ ټکور** ( ṭangṭak ór )

نر . م . عیش وطرب وساز وسرود .

**ټنګول** ( ṭangawə́l ) مص .

مت . سازکردن ، فلز رازدن وبه اواز اوردن.

**ټنګه** ( ṭangá ) ښځ . م . سِی

پولی، تنگه .

**ټنګېدل** ( ṭangedə́l ) مص . ل .

نواخته شدن ساز وغیره .

**ټوپ** ( ṭup ) نر. م .( ج . ټوپونه )

١ ) دویدن ، جست وخیز ؛ ٢ ) توده شالي وجواری .

**ټوپ ټپانی** ( ṭopṭapā́nay )

نر . م . مسابقه خیززدن .

**ټوپک** ( ṭopák ) نر . م . تفنگ

**ټوپکسالار** ( ṭopaksālā́r )

ص . نر . م . تفنگدار ، تفنگسالار .

**ټوپنی** ( ṭopanáy ) ښځ . م .

١ ) نوعی از بازی اطفال اســـــت ، ٢ ) جهاندیده وسیاح .

**ټوپۍ** ( ṭopə́y ) ښـــــځ . م .

١ ) پشتهٔ کوه ، ٢ ) ســـــــرخانهٔ چـــــلمَ ٣ ) پتـــــــــــاقی ، ٤ ) کلاه ، ٥) نوعی از بازی .

**ټوټکه** ( ṭoṭka ) ښــــځ . م.

( ج . ټوټکې ) ١ ) علاجی که بطور تجربه وعنعنات نمایند . ٢ ) تحفه ایکه

به خانه عروس میبرند .

**ټوټکی** ( totak y ) ښځ . م .
۱ ) عینک زانو ، ۲ ) کاسه چوبی خورد ، ۳ ) استخوان سُرین .

**ټوټه** ( toṭá ) ښځ . م . ( ج . ټوټې )
رقعه ، پارچه هر چیز .

**ټوخل** ( ṭūxə́l ) مص . ل . سرفه کردن .

**ټوخله** ( ṭūxə́la ) ښځ . م . سیاه سرفه .

**ټوخول** ( ṭūxawə́l ) مص . مت .
به سرفه اوردن .

**ټوخی** ( ṭuxáy ) نر . م . سرفه .

**ټوخېدل** ( ṭuxedə́l ) مص . ل .
سرفه کردن .

**ټوغ** ( ṭūğ ) نر . م . ۱ ) خمیده ، کوزه پشت ؛ ۲ ) گره .

**ټوغکی** ( ṭuğakáy ) نر . م .
۱ ) اسم مصغرټوغ به معنای کوزه پشت وخمیده ۲ ) مرض مرغ مرگی .

**ټوک** ( ṭuk ) نر . م . جلد . حصه ، جزء یک جلد کتاب ، پارچه نان وغیره .

**ټوک ټوک** ( ṭukṭúk ) نر . م
. پارچه پارچه . جزءجزء ، حصه حصه ، میده میده ،تکه تکه .

**ټوکر** ( ṭukə́r ) نر . م .
( ج . ټوکران ) پارچه ، تکه پوشیدني ، حصه .

**ټوکرټوکر** ( ṭukərṭukə́r ) ص .
نب . تکه تکه ، پارچه پارچه .

**ټوکری** ( ṭukrə́y ) ښځ . م .
سبد .

**ټوکمار** ( ṭukmā́r ) ص نر . م .
مزاحی ، مزاح کننده .

**ټوکه** ( ṭúka ) ښځ . م
( ج . ټوکې ) مزاح ، لطیفه .

**ټوکی** ( ṭukáy ) نر . م .
۱ ) قماش ؛ توپ رخت ، پارچه ، ۲) نوعی از بوته سیاه رنگ است که برگهای عریض دارد

وگلهای قشنگ میکشد .

**ټوکېدل** ( ṭūkedə́l ) مص . ل .
سرزدن نباتات ، نورو ئیدن نبات .

**ټول** ( ṭol ) نر . م . ۱ ) همه ، تماماً ، ۲ ) جمع ، یکجا .

**ټولګی** ( ṭolgáy ) نــــر . م .
( ج . ټولګي) انجمن ، جمعیت ، صنف .

**ټولګیوال** ( ṭolgaywā́l ) نر .
م . هم جمعیت ، هم صنفی .

**ټولنپوهنه**( ṭolənpohə́na )
بنځ . م . علم الا جتماع ، سوسیالوجی .

**ټولنه** ( tolə́na ) بنـــــځ . م .
( ج . ټولنې ) انجمن ، اجتماع ، جامعه .

**ټولنیز** ( ṭolaníz ) ص . نر . م .
ج . اجتماعی .

**ټولواک** ( ṭolwā́k ) نــــر . م .
( ج . ټولواکان)پادشاه ، مختار کل .

**ټولول** ( ṭolawə́l ) مص . مت .
جمع کردن ، چیدن،اندوختن .

**ټولی** ( ṭoláy ) نــــــر . م .
( ج . ټولي ) یک جمــــاعت از صد تادوصد .

**ټولېدل** ( ṭoledə́l ) مص . ل .
جمع شدن ، فراهم گردیدن ، چیده شدن .

**ټولیمشر** ( ṭolaymə́šər ) نر .
م . ( ج . ټولیمشران ) آمربزرگ ،قوماندان .

**ټومبل** ( ṭumbə́l ) مص . مــت .
۱ ) خلانیدن ؛ ۲ ) برای اگاه ساختن کسی را خفیه چـــــوندی کردن ؛
۳ ) خلال کردن دندان .

**ټونګل** ( ṭungə́l ) مص . مت .
شخصی را به انگشت یا به اشاره به چیزی ملتفت کردن و ( سکونډل ) نیز گویند .

**ټونګه** ( ṭungá ) بنـــځ . م .
( ج . ټونګې ) نول ، منقار .

**ټیپر** ( ṭepə́r ) نر . م . ج . شلغم .

**ټیټ** ( ṭiṭ ) ص . نر . م . ج . پخش ، کوتاقد ، پست .

**ټیټال** ( ṭiṭā́l ) ص . نــــر . م .

۱ ) تنزل ، نائب ، تذلل ، پستی ۲ ) دغابازی .

**ټيټوالی** ( ṭiṭwā́lay ) نر . م . پستی ، خمی ، فروتنی .

**ټيټېدل** ( ṭiṭedә́l ) مص . ل . پخش شدن ، فروتن شدن ، خم شدن .

**ټېغ** ( ṭeğ ) نر . م . آروغ .

**ټېغ ستر گی** ( ṭiğstә́rgay ) ص . نر . م . لق چشم .

**ټيغکه** ( ṭigáka ) ښځ . م . کله خورک؛ یک نوع پرنده است .

**ټيک** ۱ ) ( ṭik ) نــــــــر . م . ۱ ) یکنوع زیور طلایی زنانه . ۲ ) پوره ، کامل ، موافق ، درست . ۳ ) بجل کلان سانقه .

**ټيک** ( ṭek ) نر . م . ۱ ) شــقیقه ۲ ) یکنوع گلابتون دوزی ۳ ) زیوریکه بر شقیقه می آویزند؛ ۴ ) ارام ، توقف ؛ ۵ ) مج . جای ارام ومسکن وموقف .

**ټيکانه** ( ṭekā́na ) ښځ . م ۱ ) اجاره ، وظیفه معین تاوقت معین ۲ ) محل بود وباش .

**ټيکاو** ( ṭıkā̄w ) نر . م . توقف ، معیشت ، وگذاره ، سکونت ، ارام .

**ټيکرى** ( ṭikráy ) نر . م . ( ج . ټيکرې ) چادر زنانه .

**ټيکله** ( ṭikála ) ښخ . م . ( ج . ټيکلې ) گردهٔ نان ، ۲ ) ریکارډ گرافون .

**ټيکلی** ( ṭikaláy ) ښخ . م . قرص نان .

**ټيکه** ( ṭeká ) ښخ . م . قشقه هندوها .

**ټيل** ( ṭel ) نر . م . تیله ، فشار .

**ټيله** ( ṭelá ) ښخ . م . ( ج . ټيلې ) ( ۱ ) تیله شده ( ۲ ) لول شده ( ۳ ) برج سنکی برای روگردانیدن اب در جوي کلان ویا در دریا .

**ټيم** ( ṭim ) نر . م . پیپ فلزی تیل خاک وغیره .

**ټينګ** ( ṭing ) نــــــــر . م .

۱ ) محکم ، پایدار ، بادوام ، باقوام ، ۲ ) مج . بخیل ( ۳ ) غلیظ .

**ټینګار** ( ṭingā́r ) نر . م . اصرار ، تاکید ، محکمی ، پایداری .

**ټینګول** ( ṭingawә́l ) مص . مت . محکم کردن .

ټینګېدل ( tingidә́l ) مص . ل . محکم شدن ، پایدار شدن ، سخت شدن .

# ث

حرف چهارم عربی است که در زبان پښتو بطور مستعار استعمال می شود ارزش ابجدی ان ( ۵۰۰) است .

# ج

**ج** ( jim ) نر . م . ( ج . جیمان ،جیمونه ) حرف ۸ ) الفبای پښتو است . ارزش ابجدی ان ۳ ) است .

**جاج** ( jāj ) نر . م . (ج. جاجونه) فکر ، اندیشه .

**جار** ( jār ) نر . م . ۱ ) فدا ، نثار صدقه ، ۲ ) منادی ، ۳ ) پرده نی ، ۴ ) جویه و جنگل مصنوعی مخصوص بودنه ګری که شګاریان بودنه ترتیب مینمائید .

**جاروتل** ( jārwatál ) مص. ل . ۱ ) تنیده شدن؛ ۲ ) پس ګشـــــــتن، ۳ ) بند شدن دردام .

**جاروکښ** ( jārukas ) ص .
نب . خاک . روب ، جاروکش

**جټ** ( jaṭ ) نر . م . ( ج . جټان )
۱ ) نام قومی است؛ ۲ ) مجازاً شخص قبیح.

**جرګه** ( jargá ) ښځ . م .
( ج . جرګې ) جلسه ، کنفرانس ، جمعیت ، مشاوره و ګنګاش ، وفد .

**جرګه ګی** ( jargág y ) ښځ .
م . ۱ ) جلسه کوچک ، کنفرانس کوچک ، جمعیت کوچک ، کنکاش کوچک .

**جړ** ( jaṛ ) ص . نر . م . ج .
۱ )درهم برهم ، پیچیده ۲ ) ریشه درخت ۳ ) سم ، زهر قاتل .

**جړاو** ( jaṛā́w ) ص . نب . مرصع مکلل .

**جړاوول** ( jaṛāwwә́l ) مص .
مت . ترصیع وتزنین .

**جړاوېدل** ( jaṛāwedә́l ) مص
. ل . مرصع شدن .

**جړوبی** ( jaṛobáy ) نر . م .
ابشار.

**جغندر** ( juğandár ) نر . م . ج .
لبلبو .

**جکړ** ( jakáṛ ) نـــــــــر . م .
( ج جکړونه) بادوباران ، ارام ، لاابالی وتنبل .

**جګ** ( jәg ) ص . نـــــــــر . م .
۱ ) بلند ، سهي . ۲ ) لغب ، خلیده ایستاده .

**جګتورن** ( jәgtūrán ) نر . م .
کفتان .

**جګړن** ( jagṛan ) نر . م . میجر

**جګړه** ( jagṛa ) ښـــــــځ . م
. ( ج جګړې ). جنګ ، نزاع .

**جګړه مار** ( jagṛamā́r ) ص .
نر . م . جنګړه .

**جګوول** ( jәgawә́l ) مص . مت

۱ ) افراشتن ، بلند کردن، ۲ ) خلانید ن، ۳ ) نصب کردن .

**جلګی** ( jəlkə́y ) ښځ . م . ( ج . جلکیانې)دختر ک .

**جلګه** ( jəlgá ) ښځ .م . ( ج . جلګې ) نیزار ، کبل زار ، زمین غیرآباد وغیره .

**جلیا** ( jal yā́ ) ص . نـب . ۱) سوخته وبریان ، ۲) فروزان ۳)عاشق و دلباخته .

**جمدر** ( jamdə́r ) نـر . م . ( ج .جمدرونه ) سلاحی است مثل خنجر راست که در مابین چوب دست بوده تا بیرون نکشند از عصای عادی فرق ان نمیشود .

**جنډه** ( jandá ) ښـځ . م . (ج جنډې ) ۱ ) بیرق ، ۲ ) پارچه کهنه.

**جنګول** ( jangawə́l ) مص . مت . به جنګ انداختن .

**جنګیالی** ( jangyālə́y ) ص . نر. م ( ج جنګیالي) جنګجو ، سرباز.

**جنګېدل** ( jangedə́l ) مص . ل . جنګیدن .

**جوارګر** ( jawārgár ) نر . م . ( ج .جوارګران) قمار باز.

**جوارینه** ( juwārina ) ښځ . م . نان جواری .

**جوباته** (jubāta) ښځ . م . چادر مردانه .

**جوت** ( jawát ) ص . نر . م . ج . اشکار ،پدیدار،هویدا.

**جوتول** (jawataw(ə́l ) مص . مت . پدیدار کردن ، اشکاره نمودن .

**جوتېدل** (jawtedə́l ) مص . ل . واضح شدن ، اشکار شدن .

**جوړ** ( joṛ ) ص . نـر . م . ج . ۱ ) درست ، سالم ، صحت ، تندرست، ۲ ) تیار ، ساخت ، ۳ ) موافق، برابر .

**جوړتیا** ( joṛtyā́ ) ښـځ . م .

